# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسيس کال ۱۳۷۴ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۶۷۱ ګڼه / شنبه ۲یمه شعبان المعظم ۱۴۴۶ هـ.ق / د سلواغې ۱۳ مه ۱۴۰۳ هـ.ش / اول فبروری ۲۰۲۵ ميلادي


## د افغانستان وسلې خوندي دي او څارنه يې کېږي

افغانستان اسلامي امارت د پاکستان هغه ادعاوې په کلکه رد کړې، چې ګواکې افغانستان کې امريکايي وسلې د تحريک طالبان پاکستان يا ټي ټي پي لاس ته ورغلې دي.

د اسلامي امارت مرستيال ویاند ملا حمدالله فطرت ويلي، د افغانستان ټولې وسلې او نظامي تجهيزات په خوندي توګه زېرمه شوي او په کلکه يې څارنه او ساتنه کېږي.

حمدالله فطرت رسنيو ته استول غږيز کليپ کې دغه ادعاوې په کلکه رد او بې بنسټه وبللې په خبره يې، چاته د دغو وسلو او تجهيزاتو څخه ناسمې کارونې اجازه نه ورکول کېږي.

د پاکستان د بهرنيو چارو وزارت يو ځل بيا په افغانستان کې د امريکا د پوځ پر پاتې شويو پوځي وسايلو او تجهيزاتو باندې اندېښنه ښودلې او ويلي دي، چې د دغو پوځي سامان الاتو شتون د دغه هېواد امنيت او خلکو لپاره يو جدي ګواښ دی. ياده دې شي چې پاکستان تل د خپلو ناکاميو پړه پر افغانستان اچولې ده.

## د حج او اوقافو وزارت د هېواد په نظامي مرکزونو کې د قرآن کريم د ترجمو او تفسير لړۍ پيل کړه

د افغانستان اسلامي امارت د ارشاد، حج او اوقافو وزارت له لوري د ټول هېواد په لويو نظامي مرکزونو کې د قرآن عظيم الشان د ترجمو او د تفسير دورو د پيل په تړاو غونډه ترسره شوه، چې پکې د ارشاد، حج او اوقافو وزير، ددې وزارت مرستيالانو، د هېواد جيدو علماء کرامو، شيوخو، مفتيانو، د ملي دفاع، کورنيو چارو وزارتونو او د استخباراتو لوی رياست استازو او د وزارت د مرکزي رياستونو رييسانو برخه اخيستې وه. د غونډې په سر کې د جوماتونو عمومي رييس مولوي محمد اشرف حقاني د ټول هېواد په لويو نظامي مرکزونو کې د قرآن کريم د ترجمو او د تفسير دورو په تړاو ګډونوالو ته معلومات ورکړل.

نوموړي وويل: د ارشاد، ... ۳مخ

## د انساني قاچاق پر مخنيوي بيا ټينګار

د نيمروز والي شيخ محمد قاسم خالد، د هلمند والي مولوي عبدالرحمان کندزي او د ۲۱۵ عزم قول‌اردو قوماندان مولوي شريف‌الدين تقي ترمنځ د انساني قاچاق د مخنيوي په تړاو ناسته شوې ده.

د نيمروز مقام وياند رحيم‌الله ساجد په خپله ايکس پاڼه ليکلي، په دې ناسته کې د انساني قاچاق د مخنيوي په پار د اسلامي امارت د زعيم اميرالمؤمنين حفظه‌الله د صادر شوي فرمان په پلي کېدو ټينګار شوی دی.

د دوارو ولايتونو واليانو په دې ناسته کې ويلي، چې د نيمروز ... ۳مخ

## د ماليې وزارت دريېمه ربع کې بربښنايي اسانتياوې رامنځته کړې دي

د ماليې وزارت د تشخيصيې نمبر مرکزي امريت د روان کال په دريېم پړاو کې ګڼې اسانتياوې او لاسته راوړنې رامنځته کړې دي.

ياد وزارت د يوې خبرپاڼې له مخې، په ټول هېواد کې يو سلو ۱۷ زره ۳۱۱ او په مرکز کې ۱۵ زره ۵۱۶ تشخصيې نمبرونه تر تأييد وروسته وېشلي دي.

دغه راز ۱ زر ۷۴۲ نوي بنسټونه رامنځته کړي، په ۱ زره ۲۵۷ کې يې اړين بدلونونه راوستي، ۲ زره ۷۶۶ بنسټونو مالياتي مرکزونه بدل او سلګونه تکراري تشخيصيې نمبرونه يې له منځته وړي دي.

د ماليې وزارت د خبرپاڼې له مخې، په دې لړ کې د ياد امريت اړوند ځانګو کې برېښنايي اسانتياوې رامنځته شوې او دغه راز په سلګونه باقيدار ماليه ورکوونکي د ماليې ورکولو ته اړ شوي دي.

## مولوي ذبيح‌الله مجاهد: رواني سلواغې مياشت کې د ټولو کارکوونکو معاشونه ورکول کېږي

د اسلامي امارت وياند مولوي ذبيح‌الله مجاهد وايي، چې افغانۍ خپل ارزښت ساتلی او هيڅ هېوادوال دې په دې برخه کې اندېښنه نه کوي.

ښاغلي مجاهد په خپل ايکس ليکلي، چې د افغانستان بانک او نورو اړوند ارګانونه د افغانيو د ارزښت ساتلو برخې ته ځانګړې پاملرنه کړې ده.

د اسلامي امارت چارواکي وايي چې د رواني سلواغې مياشتې په ترڅ کې به د ټولو دولتي کارکوونکو معاشونه ورکړل شي.

ښاغلي مجاهد ورندې ليکلي: «د مالي وزارت ډاډ ورکوي چې د رواني سلواغې مياشتې په لړ کې به د ټولو يو ميليون او ۴۰زره ... ۳مخ

## يو شمېر ولايتونو کې ۱۴ مخابراتي سايټونه فعالېږي

د مخابراتي خدمتونو د تنظيم ادارې يا اترا په يو شمېر ولايتونو کې د ۱۴ مخابراتي سايټونو د جوړولو تړون د يو نيم ميليون ډالرو په ارزښت لاسليک کړی. د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوجۍ وزارت وياند ويلي، دغه تړون د اترا او يو شمېر شرکتونو ترمنځ لاسليک شوی، چې پر اساس به يې په کابل، کندهار، پکتيا، پکتيکا، خوست او نورو ولايتونو کې ۱۴ مخابراتي سايټونه جوړ شي. د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوجۍ وزارت د شمېرو پر بنسټ، اوسمهال په هېواد کې پر څه باندې ۵۷۰ مخابراتي سايټونو کار روان دی، چې په دې وروستيو کې له ۵۰ ډېر مخابراتي سايټونه فعال شوي دي.

## خوست کې د ۴ روغتيايي مرکزونو چارې بشپړې شوې

د خوست ولايت د عامې روغتيا رياست مسوولينو خبر ورکړی، چې د دغه ولايت مرکز اړوند خانې خوړ سيمه کې د ۹ ميليونه ... ۳مخ

## نړيوال تکاملي بدلونونه؛ پر ملتونو يې اغېز او د مقاومت حل لارې!

۲مخ

## د نړۍ ټکنالوژيکي سيالي

۲مخ

## سرمقاله

## د ځمکو وېش؛ بوختيا او بسيا کېدنه!

الله تعالی افغانانو ته يوه داسې پراخه ځمکه ورکړې چې هم ښه هوار خاورين ډاګونه لري، هم لوړ غرونه، اوږده ناوونه، درې، رغونه، سيدونه، چينې، د واورو، بارانونو، صفا لمر، يخنۍ او تودو خې ښه استعداد، خو له بده مرغه د استعمال او استفادې هيڅ چل يې نه دی ور زده کړی. له همدې لامه زموږ د هېواد زياتره برخه د ځمکې له پيدايښته راهيسې بيا تر ننه هماغسې شاړه او شنډه پرته ده او ترڅو چې زموږ سر ته عقل نه وي راغلی، حتماً به تر قيامته همداسې بې ځښتنه او بې ګټې پرته وي په ميليونو افغانان به د يو کوچيني کور په ارمان د نړۍ په ګوټ ګوټ کې لالهانده خوارو زار ګرځي. دا هم په داسې حال کې چې که د هېواد ټول مساحت زموږ پر موجوده ټول نفوس تقسيم کړی شي، ښايي فرد، فرد ته لږ تر لږه لس لس جريبه ځمکه ورسيږي. له همدې وضعيت سره سره د داود خان د حکومت له سقوط را وروسته تېرو شپږ. څلوېښتو کلونو کې هيڅ حکومت هم پر خپل رعيت کومه ټوټه ځمکه نه ده وېشلې. په دې توګه خلکو هماغه له نيکونو ورپاتې ځمکې خپلو کې وېشلې او په ډېره کوچنۍ هغه هم عموماً اوبيزه برخه کې يې ځان ته يو کورګۍ ودان کړی. ځکه د کور - کلي خواکې ورسره نښتې شاړې خو سلطاني دي او هر څوک چې غرض پرې کوي غاصب ګڼل کيږي او فوراً يې حکومت را نيسي. بناء پردې څومره به ښه وو چې اوس د امارت له خوا د غصب د مخنيوي ترڅنګ په هره ولسوالۍ کې څو مناسبې ساحې تشخيص شوې او پر خپل بې وزله ملت يې وېشلې وی. ښکاره ده چې بدل کې به يې حکومت له خلکو څه پيسې هم اخيستې چې ملي خزانه ورسره تقويه کېدی شي او بل خوا به ټول هېواد کې لږ تر لږه يو ميليون وګړي په کار هم بوخت شوي او په ميليونو به د پراخو کورو خاوندان شوي وی. دغه راز په ښار کې د نفوسو د زياتوالي او تراکم مخه هم نيول کېدله چې دا وقت يې ګڼې چاپيريالي ستونزې منځ ته ... ۳مخ

## يک قاچاقبر با دو کيلوگرام ترياک در نيمروز بازداشت شد

منسوبين اردوی اسلامی و ملی قول‌اردوی ۲۱۵ عزم، يک قاچاقبر مواد مخدر را همراه با دو کيلوگرام ترياک از مربوطات ولايت نيمروز بازداشت کردند.

بربنياد خبرنامه، فرد يادشده در نتيجه عمليات مجاهدين تولی سوم کندک هفتم لوای هشتم سرحدی قول‌اردوی ۲۱۵ عزم از ساحه «ماککی» ولسوالی کنگ ولايت نيمروز، بازداشت شده است.

اين مرد در حالی به دام نيروهای اردوی اسلامی و ملی افتاده که دو کيلوگرام تريک و يک کمان نيز با خود داشت.

در خبرنامه آمده که تحقيقات بيشتر از فرد بازداشت شده از سوی منسوبين لوای هشتم سرحدی قول‌اردوی ۲۱۵ عزم، آغاز شده است.

اين در حالی است که تلاش‌های مشترک نيروهای دفاعی، امنيتی، استخباراتی و حتی محتسبين امر بالمعروف و نهی عن‌المنکر در برابر مواد مخدر در کشور ادامه دارد.

## فراه کې د غواګانو د ساتنې لسګونه فارمونه فعال دي

د فراه د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رياست مسوولين وايي، چې په ياد ولايت کې د غواګانو ۷۳ توليدي فارمونه شته چې په ورځني ډول له هرې غوا له ۱۷ څخه تر ۶۵ کيلوګرامه شيدې ترلاسه کېږي.

د دغه ولايت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رياست يوه مسوول ويلي، چې د خصوصي سکټور په برخه کې د غواګانو ۷۳ فارمونه ثبت دي او د غوښو او شيدو د توليد په برخو کې فعاليت کوي چې شيدې او د غوښې يې په سيمه ييز بازار کې پلورل کېږي.

نوموړي زياته کړه، چې په هر فارم کې له ۵ څخه تر ۷ کسانو پورې په کار بوخت دي.

نوموړي ډاډ ورکړی، چې د کرنې اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت مقام ته د لبنياتو د بسته بندۍ ... ۳مخ

# د نړۍ ټکنالوژیکې سیالۍ

لیکوال: عبدلعزیز

د چین لخوا د ډیپ‌سیک( که په پښتو کې ورته اوسمهال ژورغوښت کلمه ورغوو غوره به وي.) په نوم د مصنوعي ځیرکتیا (اې ای) جوړ شوی ماډل د امریکا په ټکنالوژیکو شرکتونو کې زلزله راوستې او د سرچینو له قوله تراوسه یې شاوخوا یو ټرېلیون امریکایي ډالره تاوان وررسولی دی. اوس داسې ښکاري چې په نړۍ کې د ټکنالوژۍ سیالۍ په تېزۍ سره روانه ده. چین دا مصنوعي هوښ داسې وخت کې نړۍ ته رامنځته کوي چې د امریکا له نوي ولسمشر ډونالډ له واکمنۍ څخه شاوخوا یوه اونۍ تېرېږي. دې د مصنوعي ځیرکتیا ددې صنعت کاروباریان او پانګوال حیران کړي دي. دې چینایي چټ بوټ هغه طلسم مات کړ چې ګوندې په مصنوعي ځیرکتیا ګډېدل او دې صنعت کې پانګونه او کار خورا ګران دی. امریکایي شرکتونو له دې کار جالبه معما جوړه کړې وه او په اصطلاح دې کار ته یې یو ملیارډ ډالر، د ټکنالوژۍ زرګونه ماهرین او نور ارین بلل؛ خو دې چینایي شرکت یوازې په ۶ میلیونو امریکایي ډالرو دا کار ممکن کړ. دا دومره لږې پیسې دي چې حتی تصور نه کېده چې دومره ستر کار دې پرې وشي چې په امریکا کې دې د ونډو بازارونه راوغورځوي او یوازې په څو ملیلیونو ډالرو دې یو ټرېلیون ډالر تاوان ورسوي. دې کاریال یوازې د امریکای او غرب بازارونه نه دي لړزولیي؛ بلکې د جاپان د ټکنالوژۍ شرکتونو ته یې هم ضربه ورکړې ده. دا اپلیکېشن د جنورۍ پر ۲۰مه راووت او په ډېرې چټکۍ سره یې د مصنوعي ځیرکتیا مینوال پر ځان ورمات کړل. همدا ده چې اوس د ټېکنالوژۍ د ټول صنعت او نړۍ پام ور اوښتی دی. یعنې له دې ټکنالوژۍ لا یوازې یوه اونۍ اوړي؛ خو ټوله نړۍ یې په خپل لاس کې اخیستې. دا اپلیکېشن د جنورۍ پر ۲۰مه راووت چې د ډونالډ ټرمپ له لوړې سره سمون خوري.

ډیپ‌سیک د واشنګټن د هغو هڅو په اړه هم پوښتنې راپورته کوي چې د ټېکنالوژۍ برخه کې یې د بېجېنګ د برلاسۍ مخنیوي لپاره کوي. ددې هڅو په لړ کې واشنګټن چین ته ټول هغه چیپونه بند کړل، چې په پرمختللې ټکنالوژۍ کې ترې ګټه اخیستل کېده.

خو بېجېنګ بیا د یوه مهم لومړیتوب په توګه د مصنوعي ځیرکتیا له اعلانېدو سره په دې برخه کې هڅې دوه برابره کړې دي. د ډیپ‌سیک په څېر نوي شرکتونه له دې کبله هم خورا مهم دي، چې چین د جامو او نورو په څېر له دودیزو تولیداتو چیپونو، برېښنایي موټرو او مصنوعي ځیرکتیا ته مخه کړې.

ډیپ‌سیک د واشنګټن د هغو هڅو په اړه هم پوښتنې راپورته کوي چې د ټېکنالوژۍ برخه کې یې د بېجېنګ د برلاسۍ مخنیوي لپاره کوي. په دې لړ کې یو مهم محدودیت چین ته د پرمختللو چیپونو پر صادراتو بندیز دی.

د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ دا امریکایي کمپنیو ته د خبرداري زنګ بللی چې د نوموړي په وینا باید د «سیالۍ پر ګټلو» پام ور ټول کړي.

هغه څه چې ډیپ‌سیک دومره ځانګړی کوي، ددې شرکت د کم لګښت ادعا ده او همدارنګه له دې کاریال څخه اسانه او وړیا ګټه اخستنه ده. د دغه کار امکان د دې لامل شو چې د دوشنبې پر ورځ د چیپ جوړونې اینوېډیا شرکت د ونډو ارزښت په بازار کې نږدې ۶۰۰ میلیارد ډالره ټیټ شو. دا د امریکا متحدو ایالتونو په تاریخ کې د یوه شرکت تر ټولو لوی یو ورځنی زیان دی.

اصلا دا چټ بوټ څه شی دی او ولې یې د خلکو پام ورخپل کړی؟

ډیپ‌سیک د چټ‌جي‌بي‌ټي په څېر د مصنوعي ځیرکتیا په مرسته چلېدونکی چټ‌بوټ دی. دا یو وړیا اپلیکېشن دی چې له اپل ستور ډاونلوډېدای شي. دا وړیا کاریال دی چې د اپیل په اپ پلورنځي کې ډاونلوډېږي،ډ پ سیک وایي چې دا ستاسو پوښتنو ته د ځواب ویلو او ستاسو ژوند په مؤثره توګه ښه کولو لپاره ډیزاین شوی.

ویل کېږي دا ټېکنالوژي ارزانه هم ده. جوړوونکي یې ادعا کوي چې یوازې ۶ میلیون ډالره پرې لګېدلي. دا پیسې په امریکا کې د مصنوعي‌ځیرکتیا شرکتونو لخوا د لګول شویو میلیاردونو ډالرو پرتله ډېرې کمې دي.

خو یوه ستونزه چې د ډیپ سیک له ایجاد سره سمه رامنځته شوې، هغه پر اې ال د حکومتونو سیوری او په خپله ګټه څرخول دي. اوس د چین حکومت لخوا سانسور د مصنوعي ځیرکتیا پراختیا لپاره یوه لویه ننګونه ګڼل کیږي خو داسې ښکاري چې ډیپ‌سیک د برانیستې-سرچینې د یوه داسې ماډل پر بنسټ روزل شوی چې پیچلې دندې ترسره کولی شي، په داسې حال کې چې د ځینو مشخصو معلوماتو له ورکولو هم ډډه کوي.

له چینایي چټ‌باټ ډیپ‌سیک (Deepseek) سره له ډېرو خبرو اترو وروسته راته څرګنده شوه چې دا چټ بوټ داسې روزل شوی دی چې د چین ملي ګټې په جدي ډول په پام کې نیسي او د چین دولت په ضد حتی کوچنی خبره هم نه کوي. د تیانانمین ۱۹۸۹ پېښې په اړه چې په هغه پېښه کې د چین دولت په سلګونو محصلین په ډزو وژلي وو، هېڅ ډول معلومات نه ورکوي او درته وایي چې دا زما د خبرو اترو او د بحث موضوع نه ده. ډیپ‌سیک وویل چې داسې ځوابونه نه شم ورکولی او غوارم یوازې بې زیانه سواله ځواب کړم.

په انګلیسي ژبه خو په هېڅ صورت د دې پېښې په اړه معلومات نه درکوي خو یو ځل مې پښتو ژبه د همدې پېښې په اړه ترې وپوښتل. یو څه معلومات یې راکړل بېرته یې ژر پاک کړل او ویې ویل چې راځه چې د نورو خبرو په بحث وکړو.

د ډیپ‌سیک بنسټ اېښودونکی لیانګ وېنفېنګ ۴۰ کلن انجنیر دی. نوموړي ویلي چې ددې چټ بوټ بنسټ یې په د تېر کال په ډسمبر میاشت کې کېښود.

د لیانګ په اړه چې ژیجیانګ پوهنتونه د برېښنایي او معلوماتي انجینرۍ او کمپیوټر ساینس برخه کې فارغ شوی، ډېر مالومات نه شته خو اوس یې نوم او شخصیت د ډېرو رسنیو پام ځان ته اړولی دی. هغه په دې وروستیو کې د ټېکنالوژۍ برخې له کارپوهانو سره د چین د لومړي وزیر ‹لي کیچانګ› په یوه غونډه کې لیدل شوی و چې دا د مصنوعي ځیرکتیا په صنعت کې د ډیپ‌سیک مخ پر ودې برلاسی ښیي. بیا ځلې هم تایید کوو چې د ډیپ‌سیک لاسته راوړنې دا باور کمزوری کوي چې پراخه بودیجه او پرمختللي چیپونه د مصنوعي ځیرکتیا د پرمختګ یوازنۍ لارې دي. د مصنوعي ځیرکتیا شنونکي پر دې باور دي چې ډیپ سیک دا په ثبوت ورسوله چې اې‌ای تر ټولو پرمختللي موډلونه له محدودو محاسبوي سرچینو سره هم جوړېدای شي.

د چین غبرګون څنګه دی؟

د ډیپ‌سیک جوړول ښکاره کوي چې له لویدیځ څخه د خپلواکې ټېکنالوژۍ د جوړولو په لټه کې دی او یاد چټ بوټ یې یو لوی پرمختګ دی.

د چین کمونیست ګوند لا په دې تړاو تبصره نه ده کړې، خو دولتي رسنیو یې دا اشاره رسوله چې، ډیپ‌سیک د امریکا د ونډو بازار په لړزولو سره د سیلیکون‌درې او وال‌سټریټ خوبونه تښتولي دي. (یاده دې شي چې دا د امریکا د ټکنالوژیکو شرکتونه دي.)

د نویډیا په څېر د ټېکنالوژۍ برخې د سترو شرکتونو ونډې په چټکۍ د پرېوتلو په حال کې دي. د چیپونو دغه لوی شرکت د بازار د ارزښت له مخې نږدې ۶۰۰ میلیارد ډالر تاوان کړی. له دې چینۍ ټېکنالوژۍ سره د مایکروسافټ او ګوګل په څېر امریکا کې د مصنوعي ځیرکتیا صنعت سره د ټرلو شرکتونو د ونډو ارزښت هم راپرېوتی دی.

هغه څه چې د مصنوعي ځیرکتیا صنعت ته یې ټکان ورکړی د ډیپ‌سیک دا ادعا ده چې ګوندې ‹ار-۱› ماډل یې تر خپلو سیالانو ډېر ارزانه جوړ کړی. دا د امریکا د مصنوعي ځیرکتیا د واکمنۍ راتلونکې او پر دې ټېکنالوژۍ د امریکایي شرکتونو د پانګونې د کچې پلان له پوښتنو سره مخامخوي.

لنډه دا چې نړیواله سیالي د مصنوعي ځیرکتیا ډګر ته وتلې ده، هېوادونه په همدې لارو سیالۍ کوي. ډیپ سیک وړیا دی او د فکر کولو Thinking غوراوی هم لري. دا آپشن د دې پرځای چې له ټرېن شوي ډېټا څخه تاسو ته مستقیما معلومات درکړي، یو څه فکر هم پکې کوي، بېلابېل حالات سنجوي او ښې نتیجې ته رسیږي او بیا معلومات درکوي.

د چین حکومت لخوا سانسور د مصنوعي ځیرکتیا پراختیا لپاره یوه لویه ننګونه ګڼل کېده. خو داسې ښکاري چې ډیپ‌سیک د برانیستې-سرچینې د یوه داسې ماډل پر بنسټ روزل شوی چې پیچلې دندې ترسره کولی شي، په داسې حال کې چې د ځینو مشخصو معلوماتو له ورکولو هم ډډه کوي.

ما له چټ جي پي ټي او ډیپ سیک په جلا ډول وپوښتل چې د یوه بل په اړه څومره پوهېږئ؟ چټ جي پي ټي وویل چې زه به پر خپلو ظرفیتونو لا ډېر کار وکړم او نړۍ ورځ پر ورځ اې ای په خپل لاس کې اخلي. ډیپ سیک هم د ټوکو په انداز وویل چې دواړه مصنوعي روباټ دي او د خلکو د اسانتیا په پار جوړ شوي.

ډیپ‌سیک له راوتلو یوازې یوه اوونۍ وروسته په متحدو ایالتونو کې د مصنوعي ځیرکتیا تر ټولو ډېر ډاونلوډ شوی وړیا اپلېکیشن شو .

د «اوپن اې‌ای» یوه ستر ملاتړي، مایکروسافټ اعلان کړی چې د روان زېږدیز کال تر پایه به د مصنوعي ځیرکتیا پر اړوندو مرکزونو ۸۰ میلیارد ډالره پانګونه وکړي.

بلخوا واتیکان د سه‌شنبې په ورځ پر حکومتونو غږ وکړ چې د مصنوعي ځیرکتیا (AI) پرمختګ په ټینګه وڅاري او خبرداری یې ورکړ، چې په دې ټکنالوژۍ کې د ناسمو معلوماتو د خپرېدو مخه دې ونیول شي.

د مصنوعي ځیرکتیا په اړه په یوه نوي اخلاقي سند کې، چې د واتیکان دوو ادارو لیکلی او پاپ فرانسیس تایید کړی، ویل شوي، د مصنوعي ځیرکتیا له لارې جوړې شوې جعلي رسنۍ د ټولنې بنسټونه ورو ورو کمزوري کولای شي.

د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ خبرداری ورکړی چې د ډیپ سیک برې باید د امریکا د ټکنالوژۍ شرکتونو لپاره « د ویښتابه ښنه» وي.

ډونالډ ټرمپ هم اعلان کړی چې روان کال به په اې ای کې شاوخوا ۵۰۰ میلیارده ډالره پانګونه وکړي.

د واتیکان دغه سند داسې مهال خپرېږي، چې د چین د نوې مصنوعي ځیرکتیا ماډل « ډیپ سیک» د امریکایي ورته کمپنیو بازارونه ګډوډ کړي دي.

یاده دې شي چې نړۍ په چټکۍ سره په ټکنالوژۍ کې خپل مزل طۍ کوي، خو بدبختانه د افغانستان په ګډون ګڼ اسلامي اهېوادونه لا هم دې برخه کې پر هېڅ حساب دي او د نورو تولید، ډېټا او مالوماتو ته لاس تر زنې ناست دي. د ټکنالوژۍ او مصنوعي ځیرکتیا په دې دور کې فرانسې یو بشپړ وزارت د اې ای فعالیتونو ته ځانګړی کړ؛ خو راځئ موږ وګورو چې کومه ساینسي اداره لرو؟ د اې ای لپاره چمتو یو او آن د خپلو کانونو د کیندنې لس سل ورزیده انجنیران لرو؟

# د حق طلب انسان نښې

مولوی نورالحق مظهری

هغه څوک چې د حق مطالبه کوي، د حق پسې روان وي او تل د حق په لټه کې وي لاندې نښې لري:

۱ - د حق طلب کوونکی انسان تل د حق په اړه فکر کوي او خپله هره کړنه په ډېر تدبر او سنجیده ډول سر ته رسوي.

۲ - د حق طلب کوونکی انسان د حق په اورېدلو احساس د ارامۍ او اطمینان کوي او هیچ کله د حق په وړاندې سنګر نه نیسي.

۳ - د حق طلب کوونکی انسان هیڅ وخت د حق ردولو لپاره پلمې نه لټوي بلکې تل د حق منلو ته سر ږدي.

٤ - د حق طلب کوونکي انسان څخه چې کله حق پاتېږي ډېر غمګینه کیږي او د حق پر فوت کېدلو تل د پښېمانتیا اظهار کوي.

٥ - د حق طلب کوونکی انسان خلک په حق پېژني، حق په خلکو نه پېژني ځکه نو د حق د درک کولو وروسته که ټوله نړۍ د حق په وړاندې ودرېږي لا یې هم پروا نه کوي او تر حق نه تیریږي.

٦ - د حق طلب کوونکی انسان هیڅ وخت پر خپلې هرې خبرې نه ټینګېږي بلکې خپله خبره د حق سره پرتله کوي، که د حق سره برابره وه ورباندې ټینګیږي او که د حق سره خلاف وه بیا تر تیریږي.

٧ - د حق طلب کوونکی انسان د هیچا سره په زړه کې کینه نه ساتي بلکې مثبتې خبرې په زړه کې ساتي او بدې خبرې ډېر ژر د زړه څخه باسي.

٨ - د حق طلب کوونکی انسان د چا د شخصیت سره دښمني نه کوي بلکې د هر چا سره یې دښمني د کړنو او اعمالو پر اساس وي.

٩ - د حق طلب کوونکی انسان د حق لپاره خپل خواهشات تر پښو لاندې کوي خو د ځان لپاره حق تر پښو نه لاندې کوي.

١٠ - د حق طلب کوونکی انسان حق ته رسېدل او په حقیقت خبرېدل د ځان دنده بولي ځکه نو د حق د درک څخه خوند اخلي او حق د ځان ورکه بولي.

# نړیوال تکاملي بدلونونه؛ پر ملتونو یې اغېزې او د مقاومت حل لارې!

حمزه الیاس



د لرغوني اتصال (۲۱۰۰) کاله پخوا د نړېوالې سوداګرۍ لومړۍ شبکې راهېسې ملتونه له سیاسي، اقتصادي، ټکنالوژیکي، کلتوري او چاپېریالي له اړخه سره تړل شوي او مشترکې ګټې خوندي شوي دي. په نړۍ کې د ډراماتیک او تکاملي بدلونونه سره ټول ملتونه اغېزمن کېدای شي، هیڅ هېواد یوازې نشي پاتې کېدلی. په نړېواله سطحه د ټکنالوژۍ، سیاسي، جیوپولټیکي، ټکنالوژیکي او چاپیریالي بدلونونه د حکومتونو او نړېوالو سازمانونو پر ستراتېژۍ اغېز لري، او د مقاومت لورې ورته ټاکي.

هوښیار ملتونه او رهبران د بدلون د مدیریت لپاره ملتونه او سازمانونه آماده کوي، تر څو د هر بدلون سره مقاومت وکړي او له ستر زیانه وژغورل شي. خو تر ډېره حده د دریمې نړۍ هېوادونه چې د بدلون لپاره اوږد مهاله تکاملي پالېسۍ نه لري، او د بدلون په جریاني لړۍ کې زیانمن دي.

**پر ملتونو یې اغېز؛**

د دریمې نړۍ هېوادونه تل د سترو قدرتونو د ټکر مېدانونه ګرځېدلي دي، ځکه دوی ددې بحراني حالت څخه د وتلو او مقاومت لپاره اوږدمهاله ستراتېژۍ نه لري. د لومړۍ کچې هېوادونه هم کوشش کوي، چې د دریمې نړۍ هوښیار رهبران له منځه یوسي، تر څو دا هېوادونه د همدې نړۍ وروستي پاتې هېوادونه پاتې شي. امریکایي، هندي او چینایي ملتونه ځان د نړۍ تر ټولو ستر ملتونه ګڼي او ددې دریو ملتونو ها خوا ورته ټول ټېټ ملتونه ښکاري او دا د دوی پر پالېسۍ هم اغېز کړې ده. او همدارنګه د لومړۍ درجې هېوادونه د خپل سیال سره د مقابلې په لار کې او د نفوذ د پراختیا له امله د دریمې نړۍ هېوادونو ملي استقلال نقض کېږي او پر داخلي سیاستونو ژور اغېز لري.

نړېوال اقتصادي بحرانونه، او تجارتي بندیزونه هم د بدلون په دې تکاملي بحران کې پر دریمې نړۍ هېوادونو پراخ اغېز لري، همدارنګه د ټکنالوژۍ او مصنوعي ځېرکتیا د پراختیا سره د سایبري امنیت غلا زیاتېږي محرمیت له منځه ځي، چې د ملتونو تر منځ بې باوري رامنځته کوي، او اتومات ټکنالوژۍ انساني منابع له کاره لوېږي، چې دا تر ټولو ستر بحران رامنځته کوي.

**د مقاومت حل لارې؛**

د نړۍ دا تکاملي بدلونونه سره د ځان عیارولو لپاره وروسته پاتې ملتونه ددې تکاملي بحراني حالت څخه د ځان ژغورلو څو اساسي نقطې د پام وړ دي.

**۱: انعطاف پذیره ستراتېژیکه رهبري؛**

د وروسته پاتې ملتونو لپاره تر ټولو مهم او اساسي نقطه د انعطاف پذیره ستراتېژیکه رهبرۍ درلودل دي، تر څو رهبرۍ داسې یو ستراتېژي رامنځته کړي، چې د تکاملي بدلونونو پروسې ته لورې ورکړي، چې د اصلي اسلامي، ملي او نړېوالو ارزښتونو پر بنسټ ولاړه وي.

**۲: قوي ډیپلوماسي او د نړېوالې همکارۍ پراخول؛**

د هېوادونه سره پراخ ډیپلوماتیک ډیالوګ رامنځته کول، د اغېزمنو هېوادونو سره د اړیکو پراخول، د نړۍ په اغېزناکو اقتصادي، او سیاسي سازمانونو کې ګډون کول، دا هغه څه دي، چې ددې بحراني حالت څخه پر وتلو راسره همکاري کوي.

**۳: اقتصادي تنوع او خودکفایي؛**

د دریمې نړۍ هېوادونو لپاره په کار ده؛ چې په اقتصادي برخه کې پراخ انساني منابع جذب کړي، د خپل ملت فعال وګړي، د نړۍ د نوي ټکنالوژیکي او اقتصادي سستمونو سره عیار کړي. همدارنګه د اقتصاد تنوع، د ملي تولیداتو پراخېدل، او د وارداتو او صادراتو توازن د دې سبب کېږي چې حکومتونه د نړیوالو سیاسي بدلونونو له احتمالي فشارونو څخه وژغورل شي. د نړیوالو تحریمونو، سوداګریزو جنګونو، او مالي بحرانونو پر وړاندې مقاومت د اقتصادي مدیریت له لارې پیاوړی کېږي.

**۴: د ټکنالوژۍ پراختیا؛**

ټکنالوژۍ د نوي عصري نړۍ د پرمختګ او مدیریت مهم عنصر دی، هغه هېوادونه چې پر ټکنالوژۍ او سایبري امنیت باندې پراخه پانګونه کوي، کولی شې، چې د نړۍ تکاملي بدلونونو په وړاندې مقاومت وکړای شي.

دا پورته ځېنې هغه نقاط چې د ملتونو د بحراني حالت څخه د وتلو او د بدلونونو په وړاندې پر مقاومت پراخ اغېز درلودلی شي، نو زموږ لپاره هم په کار ده؛ تر څو د نړۍ ددې تکاملي بدلونونو په وړاندې د ملت په د ژغورلو او د مقاومت لپاره کار وکړو او له همدې فرصته پراخه استفاده وکړو، تر څو په راتلونکې کې ددې انزوا حالت څخه د مقابلې حالت ته ووځو.

# افغان اعلانات

### اطلاعیه لیلام

وزارت اطلاعات و فرهنگ به تعداد ( ۱۰۷ ) قلم داغمه جات خویش را به تاریخ ۱۴۰۳/۱۱/۲۴ در محضر هیئت ذیربط لیلام مینمایند. اشخاص موسسات شرکت های داخلی و خصوصی که خواهش خریداری آن را داشته باشند درخواستی شان را بریاست محترم مالی و اداری مدیریت عمومی محاسبه اجناس این وزارت در چهارراهی ملک اصغر مقابل وزارت امور خارجه، تعمیر اسبق وزارت دولت در امور پارلمانی بسپارند مشخصات وسایط را ملاحظه کرده پانزده فیصد تضمین طور پیش پرداخت اخذ میگردد.

### « اطلاعیه تصمیم اعطا ی قرارداد »

بدینوسیله به تاسی از ماده چهل وسوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده میشود که وزارت زراعت، آبیاری ومالداری در نظر دارد تا پروژه تدارک دو نوع کود کیمیاوی یوریا و کود کیمیاوی DAP مورد ضرورت ریاست عمومی انستیتوت تحقیقات زراعتی تحت داوطلبی ملی داخلی با کود نمبر MAIL/PD/NCB/G-138 /1403 را به شرکت تجارتی حضرت صادقی دارای جواز نمبر (۷۱۵۰۰) به قیمت مجموعی مبلغ ۵۲۷۴۰۰ ( پنج صد و بیست و هفت هزار و چهار صد افغانی) اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، میتوانند اعتراض خویش را از تاریخ نشراین اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توام با دلایل آن به ریاست تهیه وتدارکات وزارت زراعت، آبیاری و مالداری واقع کارته سخی، جمال مینه، وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارایه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرار داد نبوده والی تکمیل میعاد فوق الذکر وطی مراحل قانونی بعدی، قرار داد منعقد نخواهد شد

***

### اعلان داوطلبی یک باب کانتین در داخل لوی ریاست نظارت و تعقیب فرامین و احکام مربوط ناحیه ۶!

ریاست عمومی املاک امارتی وزارت مالیه، یک باب کانتین دارای یک باب صالون غذا خوری،آشپز خانه مجهز، یک باب اطاق فروشات ویک باب اطاق محل عکاسی و فوتوکاپی به مساحت(۱۹۰,۵) مترمربع در داخل لوی ریاست نظارت و تعقیب فرامین و احکام واقع دارالامان مربوط ناحیه (٦) شاروالی کابل را به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(۳۰۰۰۰) افغانی به شکل آفر سربسته برای مدت( ۳ ) سال به اعلان داوطلبی می سپارد.

کوردینات(جی.پی.اس نمبر):٦۹,۱۱۸۰٦۹٤۱ -۳٤,٤۷۷٤۹۹۳۱

شرکت ها ویا نماینده های رسمی آن در صورتیکه توانمندی مالی طبق قانون داشته باشد وهمچنان یک نماینده گی فعال درنقاط مختلف شهرکابل را داشته باشد میتوانند درخواست های شان را بعد از تاریخ (۱۳/ دلو / ۱٤۰۳ الی ۱۹ / دلو / ۱٤۰۳ به ریاست عمومی املاک دولتی تسلیم نموده شرطنامه را اخذ نمایند. آدرس:سینماپامیر تعمیر(۱٤) منزله،منزل۵ ، مدیریت عمومی ارزیابی قرار دادهای مرکز

شماره تماس(-۰۲۰۲۹۲٤٦۰۷-۰۲۰۲۹۲٤٦۲٤)،

تاریخ مجلس داوطلبی ۲۰ / دلو/ ۱٤۰۳ به ساعت(۱۰:۰۰) قبل از ظهر برگزار میگردد.

***

### اعلان به داوطلبی

عنوان: پروژه تهیه وتدارک ;کمره های آمنیتی برای ریاست عمومی جامعات و تخصصات دینی.

شماره دعوت به داوطلبی

MOHE/1403/NCB/G -108

وزارت تحصیلات عالی از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی پروژه تهیه وتدارک کمره های آمنیتی برای ریاست عمومی جامعات و تخصصات دینی. اشتراک نموده و نقل چاپ شده شرطنامه مربوط را به طور رایگان در حافظه یا فلش دسک از ریاست تدارکات، وزارت تحصیلات عالی بدست آورده، آفرهای خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت {۱۰:۰۰} قبل از ظهر روز { شنبه} تاریخ {۱٤۰۳/۱۲/۰٤} به ریاست تدارکات وزارت تحصیلات عالی واقع کارته چهار ناحیه سوم کابل افغانستان ارائه نمایند.

آفرهای ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پذیرش نمی باشد.

تضمین آفر به شکل بانک گرنتی: مبلغ (۲۰،۰۰۰) افغانی ارایه گردد.

جلسه آفر گشایی به روز {شنبه} تاریخ {۱٤۰۳/۱۲/۰٤} ساعت {۱۰:۰۰قبل از ظهر}در {صالون آفرگشایی ریاست تدارکات وزا رت تحصیلات عالی واقع کارته چهار، ناحیه سوم،کابل افغانستان} تدویر می گردد.

جلسه قبل از آفرگشای ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر مؤرخ ۲۵/۱۱/۱٤۰۳ روز پنجشنبه برگزار می گردد.

شماره تماس:۰۲۰۲۵۱٤۰۷۸

آدرس الکترونیکی :

Ibrahimazizi174@gmail.com

***

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدینوسیله به تاسی ازفقره (۲) ماده چهل سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده میشود اینکه ریاست تدارکات وزارت دفاع ملی درنظردارد قرارداد: تهیه و تدارک مواد آبرسانی در دیپو های قوماندانی عمومی لوژستیک ضرورت قطعات و جزوتامهای اردوی اسلامی ملی از بابت سال مالی ۱٤۰۳.

تحت شماره داوطلبی نمبر(وزارت دفاع ملی -۱٤۰۳-اجناس-۰۰۹٦-۲۲٤۱٦)را به شرکت محترم ساختمانی و تجارتی محمد کیهان حیدرزاده دارنده جواز نمبر (۸۱٦۲۵) به اساس امریه نمبر(۷٦۱۳) مورخ۱٤٤٦/۰۷/۲٦ مقام محترم وزارت دفاع ملی به قیمت مجموعی مبلغ(۳۳,۹٤۱,۵۲۰,٦) سی و سه میلیون و نهصد و چهل و یک هزار و پنجصد و بیست اعشاریه شش افغانی اعطاء نماید.

اشخاص حقیقی وحکمی که هرگونه اعتراض درزمینه داشته باشند میتوانند اعتراض خویش را ازتاریخ نشر این اعلان الی هفت (۷) روز تقویمی طورکتبی توام با دلایل آن به مدیریت تدارکات اجناس ریاست تدارکات واقع خواجه بغراء مقیم گارد سابقه، بلاک (۵) منزل (۲) اتاق نمبر(۲۰۹) ناحیه پانزده شهرکابل وفق احکام ماده پنجاه (۵۰) قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقدقرارداد نبوده والی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی ، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوی برادران طاهری لمتید یک عراده موتر پلیت ۷۹٦۷۱- ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای محمد معصوم فرزند محمد اسمعیل بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۰۰۰

***

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم تاج محمد دورانی فرزند محمد گلاب ولدیت معراج الدین دارنده تذکره نمبر ( ۱۲۰۱-۰۲۵۸٦ - ۱٤۰۰) مسکونه اصلی ولایت کونر وکیل شرعی امتیاز دواخانه رحمن بابا واقع مرکز ولایت ننگرهار طی درخواستی به مقام محترم معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه موکل خویش بالای محترم حفیظ الله ساحل فرزند عبدالشکور ولدیت عبدالجمیل دارنده تذکره شماره ( ۹۳۵۷۸- ۱۲۰۳ - ۱۳۹۹ ) مسکونه اصلی ولایت کونر گردیده است .

اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۰۲۱

***

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه متمم خط شرعی دارای نمبر ٤۷۳۹/۲۳٦ مورخ ۱٤۰۳/۱۰/۱۰ مرتبه محکمه حوزه سوم شهر به اسم محمد عیاض فرزند محمد فیصل ولدیت محمد آصف مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۰۵

***

### اطلاعیه مفقودی

مهر دفتر رهنمای معاملات پیمان بصیرزاده دارنده جواز شماره ۵۵۸۹ مورخ ۱٤۰۲/۱۰/۹ به اسم محترم پیمان فرزند عبدالجلیل مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۸۹۹۸

## یک کارخانه نساجی در هرات روزانه بیش از هفت تُن نخ تولید می‌کند

یک کارخانه خصوصی نساجی در ولایت هرات روزانه بیش از هفت تُن نخ تولید و به خارج از کشور صادر می‌کند.

حاجی زمری شیرزی، رئیس کارخانه «پخته طلای سفید افغان»، در گفتگو با خبرنگار آژانس باختر می‌گوید که آنان پنبه مورد نیاز خود را پس از برداشت از ولایات غربی و جنوب‌غربی کشور خریداری و برای تبدیل به نخ به این کارخانه انتقال می‌دهند.

شیرزی همچنین می‌افزاید که روزانه در این کارخانه بیش از هفت تُن نخ تولید و به کشورهای ایران، ترکیه و چین صادر می‌شود.

مسئول این کارخانه اضافه می‌کند که در این کارخانه ۲۲۰ تن در سه شیفت کاری فعالیت دارند.

از سوی دیگر، مولوی بشیرمحمد سیرت، رئیس صنعت و تجارت ولایت هرات، می‌گوید که امارت اسلامی برای خودکفایی کشور در عرصه تولید کالا تلاش بی‌وقفه دارد و به همین اساس، سهولت‌های لازم را برای سرمایه‌گذاران به‌منظور رشد صنعت فراهم می‌سازد.

## ده ها واسطه نظامی در بغلان ترمیم و آماده فعالیت گردید

مسئولان در قومندانی امنیه ولایت بغلان از ترمیم و آماده سازی بیست و دو عراده واسطه نظامی در آن قومندانی خبر میدهند.

قاری صدام صدر مسئول لوژستیک قوماندانی امنیه بغلان به آژانس باختر می گوید که منسوبان آمریت ورکشاپ قوماندانی امنیه این ولایت بیست دو عراده واسطه نظامی که شامل سه عراده تانک آموی، هفده عراده رنجر و دو عراده امبولانس می باشد را ترمیم و آماده فعالیت نموند.

در همین حال ملا محمدجان بختیار مسئول ورکشاپ قومندانی امنیه بغلان از آماده بودن این ورکشاپ اطمینان داده افزود که منسوبان این آمریت آماده ترمیم وسایط مختلف در هر شرایط میباشند.

## نیمروز کې د ۱۳ کیلومتره سړک ...

اچولو چارې پیل شوې دي. د سرچینې د مالوماتو له مخې پر دغه سړک د کرېړ اچولو چارې د ولایت مقام په مالـي ملاتړ او د ټولګټو چارو ریاست له لـوري د رییس جمعه خان کلي څخه تر کنګ ولسوالۍ پورې پیل شـوي چې چارې به یې د یوې میاشتې په موده کې بشپړې شي. د یادونې وړده، چې یاده ولسوالۍ د نیمروز ولایت له مرکز څخه ۲۴.۵ کیلومتره واټن لري چې پخوا د ټولګټو چارو ریاست له لوري ۱۲ کیلومتره سړک پوخ شوی و او اوس پر ۱۳ کیلومتره سړک قیر اچول کېږي

## تأمین برق شفاخانه ۵۰ بستر ...

این ولایت با نصب یک ترانسفارمر به هزینه دو میلیون افغانی از سوی دفتر صلیب سرخ تامین شده است.

او تاکید کرد که با نصب و بهره برداری این ترانسفارمر، برق مورد نیاز این شفاخانه تامین شده و در روند رسیدگی به مشکلات صحی مردم در این شفاخانه سهولت ایجاد شده است.

## رواني سلواغې میاشت کې د ټولو کارکوونکو ...

امارتي کارمندانو معاشات ورکړل شي.»

هغه همداراز لیکلي، څوک دې په دې اړه اندېښنه نهکوي او په وینا یې، د هېواد بودیجه کورنی بنسټ لري او د بهرنیو مرستو د کولو یا نهکولو پورې اړه نهلري.

## د انساني قاچاق پر مخنیوي ...

او هلمند ولایتونو له لارې دې د انساني قاچاق د مخنیوي په پار لازم اقدام وشي، تر څو د یادې چارې مخنیوی وشي.

یاده دې شـي، په دې ناسته کې پرېکړه شـوې چې د نیمروز او هلمند ولایتونو په شریکو دښتو کې به د انساني قاچاق د بشپړ مخنیوي په پار امنیتي پوستې جوړې شي.

## د حج او اوقافو وزارت د هېواد په نظامي ...

حـج او اوقافـو وزارت په ابتکار او د اسلامي امارت د مشرتابه له لارښونې سره سم به د قران کریم د ترجمو او تفسیر دورې د شعبان المعظم میاشتې له لومړۍ نېټې څخه پیل او د رمضان المبارک میاشتې تر (۲۵) مې نېټې پورې به د هېواد په لویو نظامي مرکزونو او دغه راز به په ملي راډیو تلویزیون کې په دواړو ملي( پښتو او دري) ژبو نشر شي.

وریپسي د ارشاد، حج او اوقافو وزیر شیخ الحدیث نور محمد ثاقب د غونډې ګډونوالو ته د قرآن عظیم الشـان د ترجمې او تفسیر په ارزښت عالمانـه او هر اړخیـزه وینا واوروله، نوموړي وویل: مونږ او تاسـو په داسـې یوه غونډه کې راټول یو، چې د تېر په څیر به د هېواد په ټولو لویو نظامي مرکزونو کې د قرآن کریم ترجمې او د تفسـیر دورې پیل کیږي، چې همدا نـن د مرکز د دې غونډې ترڅنګ پـه (۳۴) ولایتونو کې د قرآن کریم د ترجمې او تفسیر دورو د پیل په تړاو غونډې ترسره کیږي .

همدارنګه ښـاغلي ثاقب وویل: د ویاړ ځای دی چې داسلامي امارت له راتګ سره سم په لویو نظامي مرکزونو کې پرلپسې د څلورم کال لپاره داسلامي امارت دمشرتابه له لارښونې سره سم، د ارشاد، حج او اوقافو وزارت لخـوا د قرآن کریم ترجمې او د تفسـیر دورې پیل کېږي، چې لله الحمد هر کال پکې توسـیع او زیادت راځي, سږ کال به په(۳۳۴) لویو نظامي مرکزونو کې دقران عظیم الشان ترجمې ترسره شي چې له دې جملې څخه (۴۱) مرکزونه په کابل کې او پاتې (۲۹۳) مرکزونه په ولایاتو کې دي .

ښاغلي ثاقب د خپلو خبرو په ترڅ کې شیوخو او علماء کرامو ته ځینې مهمې او اړینې سپارښـتنې وکـړې او زیاته یې کړه چـې د قران کریم ترجمه او تفسـیر باید په خپل وخت ترسره شي، د ترجمې ګډونوالو او مجاهدینو ته دې حاضري لازمې وګرځول شـي او مجاهدینو ته دې د ښو اخلاقو، اخلاص، صداقت او دیانت لارښووني وشي.

په غونډه کـې د کورنیو چارو وزارت مرستـیال، دملې دفاع وزارت او د استـخباراتو لوی ریاست استازو او دغه راز رابلل شویو شیوخو په خپل وار سـره کټوري خبرې وکړې او د ارشـاد، حج او اواقافو وزارت د دې کار سـتاینه یې وکړه او دایې یو سـتر خدمـت وباله او وې ویل چـې دوی به خپل ټول هغه امکانات او سـهولتونه چې په واک کې یې لري د ارشـاد، حج او اوقافو وزارت لخوا رامعرفي شوو شیوخو ته برابر کړي.

## خوست کې د ۴ روغتیایي مرکزونو ...

افغانیو په لګښـت د ۴ روغتیایي مرکزونو نیمګړې چارې پیل شـوې دي.د مسـوولینو په خبره د یادو روغتیایي مرکزونـو پاتې چارې د تېر نظام په وخت کې ۸۰ سلنه پر مخته تللي، چې د ۲۰ سلنه پاتې چارې یې نن پیل شـوې، چې ورسـره به د مرکز اړوند غازي آباد، نیازي آباد، سورواک، سلیمانزیو او د ګربز ولسـوالۍ د چنار د سیمې خلکو ګڼې روغتیایي ستونزې حل شي.

## فراه کې د غواګانو د ساتنې لسګونه ...

د کارخونې او دسـتګاه د فعالېدو وړاندیز شوی چې په راتلوونکي کې به جوړ او فعال شي.

د یادونې وړ ده چې د اسلامي امارت په حاکمیت سره په ټول هېواد کې د پانګونې ښه زمینه برابره شوې او سوداګر په ډاډه زړه پانګونه کوي

## د ځمکو وېش؛ بوختیا او ...

راوړې دي. د یـوې کورنـۍ لپاره پراخ کور درلـودل حتماً د هغوی په اقتصادي پرمختګ کې اغېزمنه ونډه لري. ځکه هغوی کولی شي خپله کلا کـې هم څو مېوه لرونکي او ځنګلي ونې وپالي، هم ځینې څاروي او هم د خپل ضرورت څه ناڅه شنبلي او سابه. په دې توګه زیاتره کورنۍ خپلې اړتیاوې له کوره پوره کوي او پر بازار یې اتکا کمیږي. اوس نو که په ټول هېواد کې مثلاً د یو میلیون کورنیو دغه ګټه حساب کړو، میلیاردونو افغانیوته رسیږي. دا شوې د ځمکو د وېش ګټې، اوس تاسې دا محاسبه هم وکړئ چې که د ځمکو د وېش پروګرام همداسـې په ټپه ولاړ، خو د غصـب مخنیوي لپاره ان دغره یوه شـاړه لمن کې هم یو هېوادوال حتی یوې کوچنۍ خونې ته نه پربښـودل کیږي او حال هم دا وي چې نفوس هم ورځ په ورځ زیاتیږي او په اټکل سـره د هېواد هره کورنۍ پنځو کلو کې یوې اضافي خونې ته شدیده اړتیا پیدا کوي چې ښایي لسو کلو کې بیا د یـو ځانګړي کور په جوړولو هم لاس پـورې کړي، نو فکر وکړئ چې همدا نن او هره بله ورځ د هېواد په ګوټ ګوټ کې څومره کاریګر د حکومت له لاسه بې روزګاره کیږي، د څومره خلکو لاسونه نړل شوي او څومره اړمن د یوې کوټې او کور لرلو انتظار باسـي. په دې اساس ښه به داوي چې یاخو حکومت د ځمکو پر وېشلو ژر تر ژره لاسې پورې کړي او یا سـلطاني ځمکې او ډاګونه د اهمیت له مخې تشخیص کړي، څو مهم ځایونه یې وسـاتي او د کلیو خواته کم ارزښته سیمې پربږدي چې عام ولس یې په خپل انتظام سـره وویشـي او کار ترې واخلي. بله چاره ځکه نشـته چې نفوس خو طبعاً چټکۍ سره مخ پر زیاتېدو دی، بیا نو د استوګنې لپاره له هېواده ووځي، فضاته وخیژي او که پر ځمکه ننوځي؟

Shariat
Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

February 01 January 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 671


# د برېښنا د ۲۴ساعته کېدو په پار هڅې چټکې شوې



د برېښنا شرکت مشر عبدالباري عمر وايي چې د برېښـــنا تولید ډېروالي په موخه له کورنیو سرچینو څخه د برېښنا تولید ۱۳ نوې پروژې پرانېستل کېږي. نوموړي پر خپلــه ایکس‌پاڼه لیکلي چې دغه پروژې به تر راتلونکې یوې یا دوو میاشــتو پورې پرانېستل شي. نوموړي لیکلي چې تر راتلونکو دوو میاشــتو پورې هېوادوالو ته ښه زېری لرم. ګومان کېږي چــې په راتلونکو دوو میاشتو کې به د کورنۍ برېښنا د بسیاینې په پار یو شمېر سترې پروژې پرانېســتل شـــي. هېواد کې د برېښنا کمښت او یوشمېر ســیمو کې یې، نشــتون، هېوادوال له سختو ستونزو سره مخ کړي دي. اوس مهال د هېواد ۸۰ســلنه د اړتیا وړ برېښـــنا له ایران، ترکمنستان، تاجیکستان‌اواوزبیکستان هېوادونو څخه راواردېږي.

## نیمروز کې د ۱۳ کیلومتره سړک د قیرولو چارې پیل شوې



د نیمــروز ولایـــت د ټولګټو چارو ریاست مسوولین وايي، چې د دغه ولایت په کنګ ولسوالۍ کې پر ۱۳ کیلومتره سړک د قیر ... ۳مخ

## نمایشگاه کتاب به هدف ترویج فرهنگ مطالعه در هرات گشایش یافت



ایــن نمایشــگاه که از ســوی یک کتاب‌فروش برگزار شده در آن، بیش از سه هزار جلد کتاب در بخش‌های مختلف به نمایش گذاشــته شــده است.
حامــد رســولی، برگزارکننــده‌ی این نمایــش‌گاه، می‌گویــد که این نمایش‌گاه برای پنج روز برگزار شده است.
در ســوی دیگر، حمیدالله غیاثی، آمــر فرهنــگ و هنــر ریاســت اطلاعات‌وفرهنگ هرات، می‌گوید که امارت اســلامی به پشتیبانی از نویسندگان و ترویج فرهنگ مطالعه متعهد است. در ســال‌های پسین، چندین نمایش‌گاه خردوبزرگ کتاب به هدف رشــد فرهنــگ مطالعه در هرات و دیگر ولایت‌ها برگزار شــده است.

## از سرگیری کار ساخت ۴ مرکز صحی نیمه‌کاره در خوست



وزارت صحت عامــه می‌گوید، کار ساخت چهار مرکز صحی نیمه‌کاره به ارزش نزدیک به هفت میلیون افغانی در ولایت خوست از سر گرفته شد.
به گفتــه وزارت صحــت عامه، کار ســاخت چهــار مرکز صحــی در حضورداشــت مولــوی عبدالولــی حقانی، معین عرضه خدمات صحی این وزارت آغاز شده است.
آقای حقانی در مراسم آغاز کار مجدد این پروژه‌ها گفته که بربنیاد دســتور اختصاصی عالیقــدر امیرالمؤمنین حفظه‌الله قــرار اســت ۱۷۴ پروژه نیمه‌کاره صحی به هزینه ۴ میلیارد و ۵۵۶ میلیون افغانی در کشــور از سر گرفته شــود. معیــن عرضه خدمات صحی وزارت صحت عامه افزوده که از این میان قرار است کار ۴ پروژه در ولایت خوســت و ۵ پروژه در ولایت ننگرهار تا پایان ســال‌جاری تکمیل شــود. گفتنی‌اســت کــه پروژه‌های نیمه‌کاره پس از تکمیل کار با وسایل و تجهیزات صحی مجهز و آماده ارایه خدمات صحی خواهد شد.

## کابل کې درې تنه د غلا په تور ونیول شول

د کابــل امنیه قوماندانۍ وايي، چې یولســمې حوزې پولیســو درې تنه غله نیولي دي.
یادې قوماندانې پــه یوې خبرپاڼې کې ویلي، چې لــه دې ډلې یې یو تن یو کور ته د اوښتو په مهال نغدې پیســې او یوه اندازه سره زر یې غلا کړي وه، نیول شوی دی.
د خبرپاڼې له مخــې، دوو تنو نورو یې له خلکو څخــه په چل او دوکه توکي په کرایه وړل د خرڅولو په تور نیول شوي دي.
د مسوولین په وینا، چې دغه د غلا په تور نیول شوي کسان د پولیسو د توقیف برخې ته لېږل شوي دي.
امنیتي چارواکي له خلکو غوښــتنه کــوي، چې د شــکمنو کســانو او پېښو په اړه پولیسو ته سم‌لاسي خبر ورکړي، ترڅــو د مجرمینو د نیولو بهیر چټک شي.

## بدخشان کې د برېښنا رسولو وسایل پېرل شوي

د بدخشان ولایت د برېښنا شرکت د دغه ولایت مرکز او بهارک ولسوالۍ زیاترو ســیمو ته د برېښـــنا رسولو په موخــه د ۱۳۸ میلیونــه ۴۱۱ زره افغانیو په ارزښت بېلابېل برېښنایي وســایل پېرلي دي. د مســوولینو په خبره په دغــه تجهیزاتو کې ۱۲۰۸ پایې او ۸۳ قلمه اړین وسایل شامل دي. ورته وخت کې د برېښنا شرکت مســوولین وايي، چې په پېرل شویو وسایلو کې ترانســفارمرونه، فلزي پایې، د مســو او المونیــم کېبلونه، ټیمپولونــه، د ســویچ بورډونــه او سلیټورنه شامل دي، چې په بهارک ولسوالۍ او د فیض آباد ښار په بېلا بېلــو ناحیو کې به وکارول شـــي. د یادونې وړده، چې د بدخشان برېښنا شرکت هڅه کوي چې د زیربناوو په ښه کولو او د برېښنا رسونې د پوښښ په زیاتولو سره د برېښنا اړتیاوې پوره کړي او د برېښنا د کمښت ستونزې هوارې کړي



## تأمین برق شفاخانه ۵۰ بستر ولسوالی رخه



بـــا نصب یک پایه ترانســفارمر به ظرفیت ۱۰۰ کیلوولت امپیر، برق شفاخانه ۵۰ بســتر رخه پنجشیر تأمین شد.
انجنیــر شــعیب نظری مســئول پنجشیر برشـــنا به خبرنگار آژانس باختر می گوید که برق شــفاخانه ۵۰ بستر ولسوالی رخه ... ۳مخ



## احمد شرع د سوریې د انتقالي حکومت مشر شو

د سوریې دولتي خبرې اژانس سانا راپور ورکړی، چې احمد شرع په سوریه کې د انتقالي حکومت د مشر په توګه ټاکل شوی دی. دې اژانس ویلي، چې نوموړی به د نوي اساســي قانون تر جوړېدو لنډمهاله د قانو جوړونې شوراء جوړه کړي. یاده پرېکړه په دمشق کې د التحریر الشام د متحدو چارواکو په شــتون کې اعلان شوه. دا په داسې مهال ده، چې د تحریر الشام مشر احمد شرع په مشرۍ ځواکونو په ۲۰۲۴ کال د دسمبر په لومړیو کې د بشارالاسد رژیم له واکه وغورځاوه.

## واشنګټن کې یوې مسافر وړونکې او پوځي الوتکې ټکر کړی



د امریکن ایرلاینز شرکت مسافر وړونکې الوتکې له یوې پوځي چورلکې ســره ټکر کــړی دی. د امریکا د هوايي چلند ادارې ویلي، چې دا پېښــه ورمه شــپه ۹ بجې په داســې مهال رامنځته شوې چې د یاد شرکت مسافر وړونکې الوتکه د رونالد ریګن ملي هوايي ډګر د ۳۳م باند ته نږدې کېده. که څه هم د مړو او ټپیانو په تړاو دقیق معلومات نشته؛ خو امریکن ایرلینز شــرکت ویلي، چې له چارواکو سره په اړیکه کې دي او د ژغورنې هڅې یې روانې کړې دي.

## متا به ترمپ ۲۵ میلیون دالر می‌پردازد

بربنیاد گزارش‌ها، مســئولین شرکت متا (مالک فیســبوک و انستاگرام) پذیرفتــه که ۲۵ میلیون دالر امریکایی بــه دونالد ترامپ، رئیس جمهور امریکا می‌پردازد. به گفته ســخنگوی شــرکت متا، مبلغ یادشده بدلیل تعلیق شــدن صفحات کاربری دونالد ترامپ در ســال ۲۰۲۰ و هنگام یورش هواداران‌اش به ساختمان کنگره صورت گرفته است. آقای ستون تأکیــد کرده که بــا پرداخت مبلــغ ۲۵ میلیون دالر بــه دونالد ترامپ، شــرکت متا متهم به هیچ تخلفی نخواهد شــد. قرار اســت از این مبلغ ۲۲ میلیــون دالر به دفتــر دونالد ترامپ و ۳ میلیون دالــر به هزینه‌های اداری و شــکایت کنندگان هوادار دونالد پرداخته شود.
کارشناســان تکنالوژی می‌گویند که پرداخت ۲۵ میلیون دالر از ســوی متا به ترامپ آنهم در زمان ریاســت جمهوری او نوعی دیکتاتوری او و باج‌دهی اعلام‌نشده این شرکت است.




## ټرمپ کډوال پر ګوانتامو زندان نازوي

د امریکا ولسمشــر ډونالډ ټرمپ ویلي چې د یو فرمان په صادرولو سره بــه ۳۰زره هغه کډوال، چې جرمي مخینه لري او په ناقانونه توګه امریکا ته داخل شــوي، د ګوانتنامو زندان ته واســتوي. هغه زیاتوي چې، دغه فرمان به د دفاع او داخلي امنیت وزارتونو ته لارښــوونه وکړي، چې دغه زندان د ۳۰زره مهاجرو لپاره برابر کړي.
نوموړي پــه خپلو خبرو کې ویلي چې ډېــری مجرمین بد دي او آن په هېوادونو یې هم باور نه شــي کېــدی، چې بېرته امریکا ته راســتانه نه شــي. د ټرمپ په خپلــه دوی یې عمري بندیانوي او لــه ګوانتامو د وتو چانس نشته.